خله نیک په لسو بد په یوه سنبکل شی
په قرآن کی دی راغلی آیتونه

په ریښتینی عذر زړګناوے بوتولی
ښنی دے په دے ناطق دے حدیثونه

دد غه انسانی تعریف له مخی باید انسان د علویاتو او سفلیاتو د ترکیبی نظام له اعماقو او نهایت حکمو او عجیبو او غریبو اسرارو څخه سترګی پټی نه کړی د هغو په لیدلو د الله تعالیٰ پر وجود او وحدانیت او د الوهیت په نورو صفاتو او د ارضی او سماوی مخلوقاتو پر محکومانه عجز او بی چارګی استدلال ونیسی او ټولی فاسدے خدائے نه منونکی عقیدے او نظریات علی وجه البصیرت رد کړی او که چیرے بیا هم دا نسے شیطانانو د فاسدو نظریاتو او نفسی خواهشاتو تابع وی دلوے خدائے په لویه خدایی سترګی پټی وی ـ بغاوت او سرکښی غوره کوی نو دا سے انسان هم انسان دے ـ خو دا سے انسان لکه چه د پښتو ملی او پیاوړے شاعر رحمٰن بابا ؒ په خپل شعر کی تعلیماً دا سے تعریف کوی :

چه د خدا ے له معرفته خبر نه شوم
معلومیږي چه یا دیو یم یا دواب یم

که صورت می د سړي دی زه ئې څه کړم
په معنی کی د چارپایو په حساب یم

لو هغه انسان یا انسانان چه د خپل انسانی تعریف پر ضد ئې عمل شروع کړے وی - یعنے د مینی او محبت تلطف او شفقت پر ځاے ، کینه ؤ حسادت ، شدت وفساد ، قتل و قتال ، جنګ و جدل .

۲ - د تحریک اسلامی وانسانی پر ځاے شیطانی او ضد انسانی کفری ودهری تحریک خپله وظیفه او دنده ګرځولی وی -

۳ - بصیرت ئې په عدم بصیرت بدل شی په عجائبو او غرائبو ئې سترګی پټی کړی او د لوے خداے دلویي خداي څخه انکار او منکر شوی - یا منکر شوی وی -

۴ - دا چه خپل ځان او موجودیت د لوے خداے په هستی او موجودیت کی فنا خپل طاقت وقدرت ، جاه جلال هیر او هیڅ وګڼی . یو دم راولاړ او د نظام لازوال آواز

پوره ته کړي ـ نو دا دے قضاوت به محترمو لوستونکو ته وسپارو چه ایا دا سے انسانانو ته انسان او انسانان وائی او که حیوان او حیوانات .

محترمو لوستونکو !

د دغه کتاب د دغی سر یزے له لوستلو او مطالعے له مخی به مو شاید حقایق او دقایق درک کړی وی چه ما ولی او د څه لپاره د و مره دلایل ستاسو حضور ته عرض کړل البته د دغه شخه ورو سته غوارم چه ستاسو فکر و نظر کیږے دا سے نا وړه ضد انسانی او ضد بشری او ضد اسلامی حادثی ته راوګرځوم چه دهغی په نوم او عنوان لاندے دغه رساله یا کتاب لیکل شوید ے ـ خدا ئے دے وکړی چه تاسو محترمو او دهغو په ځان مینو تش په نوم شکل او بڼه انسانانو په معنی او حقیقت کی چارپایانو ته قناعت ورکړا ے شم ـ

( ومن الله التوفیق )

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمد لله الذی قسم بیننا معیشتنا فی الحیوة
الدنیا وفضل بعضنا علی بعض فی الرزق
والصلوة والسلام علی سید المرسلین و
خاتم النبین سیدنا محمد ن الذی
جعل المال للوارث و کفل العیال بنفسه و
علی اله واصحابه ومن تبعهم باحسان
الی یوم الدین -

امابعد :

محترمو ورونو ! او ډیرو قدرمنو لوستونکو !

نه پوهیږم چی د ۱۳۵۷ هرش کال دعوانی د میاشتې
اووه نیټې ته کوم نوم کیږدم او څه ډول
ئې تعبیر او تفسیر کړم .

خو د اختصار په توګه او معنی په لحاظ د قدرمنو لوستونکو حضورته دومره عرض کړم چه په عربی لسان (ژبه) کی لټور غواړۍ ته وائی او غواړۍ هغه حیوان دے چه له عقل پوهی، منطق او ادراك څخه خلاص او بیخی بے برخی دے. دا هم محترمو لوستونکو ته روښانه او په ډاګه ده چی د غوایانو په مینځ کی په پراخه پیمانه فرق او توپیر موجود دے - ځینی غوایان ډیر اصیل، قرار، بی ښکرو د پولی او پټی د قلبه کولو او د نصل او زراعت د لاس ته راوړلو لپاره ډیر ګټور، بختور او د استفادے وړ وی - د همدغه بی عقلو او بی منطقه حیوانانو بله برخه ښکرور وهونکی او وحشی وی. ګر چه خپل ښتن په ډیر زیار و زحمت، تکلیف و مشقت سره سمتر کړی او غټ کړے وی خو بیا هم حیوان حیوان وی، د توانائی او قدرت په وخت کی د خپلو تیرزو او تیرو او بی کړکے ښکرولو په واسطه ئی وهی او یا خوئی وژنی او له منځه ئی وړی. نه دده خدمت او ساتل وریاد وی، نه ستړول او پالل دا ځکه چه عقل پوهه او تمیز نه لری، نه بچپل زیان او تاوان پوهیږی او نه دخپل مالك په ګټه او نقصان او نه خپل مستقبل،



سرودی
قادر
رفیع
وطن جار
کارغل
لعین
تڑکی

عواقبو او نتايجو ته كوري چه زما سړى به ددغه بد او ناوړه عمل په كولو خپل خاوند يا دده وارثان څه كوى لو آخره نتيجه داشى چه ددغه ظالم اوبې كرکې وحشي او خونړى غوائي څښتن دډير قهر او غصتي له امله دغه ظالم ، جابر سنكرور اوبې كركې غوائي خلا لوى او په خپلو لوسونو ئې لتوبه . ټوټه - قطره قطره كوى څوچي له يوې خوا ورته خپل انتقام واخلى اوله بله پلوه دتل دپاره نور خلک دده له ضرر رسولو ، وهلو او وژلو څخه خلاص او بې غمه كړي . لوددغى حقيقت او واقعيت له مخې چه هيڅوك له دغه راز واقعيت او حقيقت څخه انكار نشى كولى لو دابه دډيرو محترمو لوستونكو د عقل او بصيرت خاوندانو حضورته عرض كړم چه :

د ١٣٥٧ هـ ش كال د غوائي د مياشتې ٧ ، نيټې - يو سنكرور غوائي « ترهكى » عليه لعنت د افغانستان غيور ننګيالى ، جنګيالى مسلمان ملت ته مخ ته راوړ - دغه لعنتى تره كى دخپل راتګ سره سم د افغانستان د مسلمان ملت په هر كور كلى - ولس ، ښار بازار كى د شيطانانو په څير « دريه » يعنى څوڅا دونه وزيرول . خلقيان او پرچميان يا په بل عبارت له لوى خداى نه منكران ، دهريان او ملحدان

چه د افغانستان د غریب مسلمان ملت د کونډو رنړو، یتیمانو، مسکینانو، خوارانو او بې چاره ګانو په ملي پنګه په سنوو څیو، لیسو او پوهنځیو کې روز لی وه. کله چه د روس ملحدو اجنټانو او نوکرانو د چپل وحشي او ظالم بادار روس په اشاره او پلان یا په بل عبارت د روسانو په فوځي او فضائي، تسلیحاتو مرستو او تعاون د افغانستان په اسلامي هیوادکې د نومورې کال د غوائي په اوومه نیټه د کفر او الحاد کودتا وکړه او د روسانو په ګټه ئې د باطل حکومت اعلان وکړ. نو د غوائي د میاشت اوومه نهومنی او ستاسو فکر هغو «۷» ډنګرو او «۷» چاغو غوایانو ته راکرزوي چه د مصر د قبطیانو د باچا زیان بن ولید خوب لیدلی او بیا دد غه خوب تعبیر ول دی چه حضرت یوسف (ع) لخوا شوی دے. چه له اوو چاغو غوایانو څخه اوه کاله آبادي او وسعت او له ډنګرو غوایانو څخه د قحطۍ او سختۍ اوه کاله دی.

شک نشته چه په افغانستان کې د ملحدو کمونستانو کودتا داسے د ظلم او وحشت کودتا وه چه د اسلام آبادي ئې د کفر او الحاد سره، د هیواد زرغون والی ئې په وچو ډاکونو او سپیرو ځمکو، آباد کلي او ولسونه ئې د کنډوالو او

د علم او معرفت آبادي ئې د کفر او الحاد په. ويجاړو بدلې کړيدي.

لو د غوائی اوومه د اوو(۷) دنکرو غوايانو واقعه تمثيلوي او بله دا چه دخلقيانو په پاده کی اوه مشهور غوايان وو چه هغه:

۱- تره کی
۲- امين
۳- ببرک کارمل
۴- اسلم وطن جار
۵- رفيع
۶- قادر
۷- اسدالله سروری، دی

او دغه اوه تنه د پادے په سرکی او لور ورپسی وو دوے دا سے غوايان وو چه حيوان تر ليوے اندازے پوری د خپل حس او شعور په وسيله ځان له خطر څخه ساتی ولی دوے دا سے غوايان دی چه عقل لا څه چه د حيوانی شعور ښتنتان هم نه دی او د خپل ضرر او خطر عوامل پرے نه پيژنی.

د غوائی مياشت ددوے د غوائی لوپ صفت ښئی څکه

دوی د غوایانو پیشان د هیڅ فکر پوهی او تمیز خاوندان نه دی ، په دوی باندی روسی باداران هرڅه چه کوی ، هغه کوی - دخیر او شر تمیز ورسره هیڅ نشته . دوی غوایان دی چه پخپلو غاړو کی ئی استعماری جغ ننلی دی او دخپلو بادارانو په گټه یوی « قلبی » او کارونه کوی او تکلیفونه او کړاوونه گالی ، دوی سل په سلو کی اکر که لکی نه لری غوایان دی او غوایان د انسانانو په نسبت دځمکی او آسمان فرق دی غو غوایانو یا په سبل عبارت ملحدانو او د هریانو په لمړی قدم کی د افغانستان د مسلمان ننګیالی او په خدای ج ، عاشق او مین ملت ددینی او مذهبی خبیرو بصیرو علماؤ په نیولو بندی کولو او وژلو شروع وکړه ، په دویم قدم کی د عسکری مسلمانو صاحب منصبانو ، ملکی لوړ رتبه مامورینو دمکاتبو لیسو ، پوهنځیو ، مسلمانو استادانو او شاګردانو همدغه راز د ډیرو کمترانو ، پوهانو او سیاسی شعور خاوندانو د قومی او ولسی مشرانو حتی د خپلو خپلوانو ، پلرونو او نیکه گانو چه ددوی قوی ایمان ټینګه او راسخ عقیده په ټولو اسلامی اصولو او فروعو پابندی ورته معلومه وه او په دی باندی پوهیدل چه ددغو انسی شیطانانو یا

# سریزه

محترمو لوستونکو د نننیو تحولاتو ، تحرکاتو تغیراتو او تبدیلاتو یا په بل عبارت د ځینو خیالاتو افواهاتو او تشکلاتو د منځ ته راتلو له مخې د انسان او انسانیت او دده د خوی او خصلت ، حرمت او شرافت کرامت او کرمیت په برخه کښې به یو څه توضیحات او معلومات ستاسو حضور ته وړاندې کړم .

۱ :- د روح المعانی د تفسیر د لمړنی ټوك د ۱۴۳ مخ د تشریح روښانتیا ـ معلومات او توضیحات ورکولو په حواله به عرض کړم ـ هغه داچه د انسان لفظ مفرد دی ، جمع ئې ( اُنَاسُ ) یا ( اُنَاسِیّ ) راځي او د الفظ مشتق دی د ( اُنسُ ) نه . او ( اُنسُ ) د انسانانو په منځ کی مینې ، محبت ، الفت او شفقت ته وییل کیږي نه ظلم و زور ، تیری تجاوز ، قتل و قتال ، شدت و فساد ته .

په بل عبارت د برژنف بچیانو هیڅ ډول چل او فریب دوکه او نیرنګ پر دوی باندې کوم تاثیر نه کوی او نه ددوی د دغه کفری، دهری او کمونستی نظریاتو او عملیاتو سره موافقه لری. او په دریم قدم کی د عامو مسلمانانو چه ددوی عمل نظر او ناوړه غیرانسانی او اسلامی اقدام او حرکت به ئی غندلو په وهلو ټکولو بندی کولو او وژلو پیل وکړ. له یوې خوانه ئی دد غو محترمو او مسلمانو ذواتو سره دغه غیر اسلامی او غیر انسانی وضیعت او عمل نه په ډیر شدت او جرات سره دوام ورکړ او له بلی خوانه ئی ددوی په مالونو او کورونو په اسبابونو باندې چور او چپاول جوړ کړ. سربیره پردې ددوی د آبادو کورونو په بمبارد ولو. توپونو او راکټونو ویشتلو او سوزولو ئی اقدام وکړ. هغه ژ چه په لمړنی مرحله کی د علم او پوهی خاوندان ددغه ظلمونو ستمونو. تیری او تجاوزونو له کبله په داسې حال کښی چه د خپلو ملحوظاتو او خطراتو په نظر کی نیولو سره ئی خپل وخپلوان، یاران وم دوستانو حتی خپل پلرنی او مورنی خواږه ورونه او نږدې کاونډیان هم پرځان نه پوهول په لوړو ستارو شپوکی د خپلو کورونو، مالونو، اسبابونو

خپلو خپلوانو خوږو او عزیزو دوستانو په پریښوولو او د خپل ګران ابوی وطن څخه د خپلو مستورو او محجوبو تور سرو، ماشومانو، کمزورو، زړو، ضعیفو پلرونو خویندو او میندو سره یوځای په هجرت کولو مجبور شول چه په دښتو، غرونو، هیرو او بیابانونو کی ژوند غوره کړ او ځینو خپلو وړونو کاونډیو اسلامی هیوادونو ته لکه پاکستان، ایران او داسی نورو ته په دربدری په حالت کی ځانونه او اولاد ورسول او څه برخه افغانی مسلمانان د خپلو تور سرو وړو معصومو، ضعیفو میندو او پلرونو سره د دغو ظالمانو او بی کرکی زرخریده غلامانو یعنی خلقیانو، پرچمیانو او د دوی د بادارانو وحشی درنده ګانو (روسانو) د بمبارد او درنو مدرنو سلاح ګانو په کولیو ورولو په دښتو غرونو پره دیو، غرنیو کورونو او لاروکی له منځه لاړل او خپل پاک او سپیڅلی روحونه ئی په خداوندی اسلامی لاره کی د خپل حقیقی بادار د دنیا او آخرت واکدار سپایانو ته وسپارل.

انا لله و انا الیه راجعون ۰



محترم مولوستونکو !

غواړم چه دد غه ظالمانو او جابرانو د ظلم، تیری او تجاوز په برخه کی یو لنډ او مختصر شعر هم ستاسو حضور ته عرض کړم ؛ چه عنوان ئی دی :

# داسی غټ ظلم

داسے غټ ظلم خلق پرچم په افغانانو وکړو
لکه په عصر د موسیٰ کی چی بدبختو فرعونیانو وکړو

بل داسے ظلم په نړی کی هیڅ کړے نه دے -
لکه چه نن په افغانانو شورویانو وکړو

څوک چه انسان وی داسے ظلم په بشر کله کړی
وشیق خو وائی دغه ظلم حیوانانو وکړو

*

دلته د ډیرو محترمو لوستونکو حضور ته یو بل عرض هم باید وړاندې کړم - هغه دا چه شاید خلقیان او پرچمیان پخپلو ناولو خدای نامنونکو خولو دا هم ووائي چه دغه مثال څرنګه پر موږ باندې رښتیا کیدای او تطبیق کیدای شي ولې چه موږ خو پوه انسانان د عقل ومنطق خاوندان یو - خوږه ددوي د سوال کولو او ناولو خولو خوږولو نه مخکښې په ځواب کښې دا وایم چه تاسو په دې باندې ونه نازیږئ چه انسانان او د منطق خاوندان یاستئ ، باید پوه شئ چه ستاسو نه د پا د دې غوایان ډیر شرافت ، فوقیت او بهتریا لري ـ ځکه چه غوایان خو غیر مکلف مخلوق دي چه لوي او توانا خدای د انساني نوعې د استفادې اوخدمت کولو لپاره دداسې لورو غیرنا طقو اوغیر مکلفو حیوانانو په شیر خلق ( پیدا ) کړي چه په اُخروي ژوندکې له خداوندي دربار ه ورته کوم تعذیب او توهین ، جنت او دوزخ نشته او نه احکم الحاکمین خدای له دغو څناورو څخه چه یو غیر مکلف مخلوق دي ، دد نیاوي ژوند ، پوښتنه کوي ، چه څه د پاره پیدا شوي او په کوم حالت مړشوې او په کرم هیت څما حضورته راغلي یاست ـ

حال داچه انسانی نوعه یعنی بنیادمات له حضرت آدم (ع)
څخه راښولې ترقیام قیامت ته پورے چه څه خلق شوی
او څه خلق کیږی دهغی محکمے وعدی له مخی چه دوے
په عالم ارواح کی د الله تعالیٰ په حضور کی :
.... قَالُوْا بَلٰی ... ویلی دی
ه مکلف دی چه خپل خالق ، رازق ، او حقیقی بادار
وپیژنی ۔ د پیژندګلوی څخه وروسته دده په طاعت
وعبادت ددغه قرآنی اِرشاد په مصداق چه فرمائی :

وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْاِنْسَ اِلَّا لِيَعْبُدُوْنَ ○

بوخت او مشغول شی ۔ د ارحم الراحمین خدا ے د اوامرو
پیروی او دهمدغه مقتدر او مُنْعِمْ حقیقی خدا ے د
نوا هیو څخه ځان وساتی ۔ پر ځا ے ددے چه تاسو د
انسانیت او مکلفیت له مخی خپل خدا ے وپیژنئ ۔ دده
د بی شمیره نعمتونو چه انسان دتل د پاره ددغه قرآنی
آیت کریمه په تائید :

وَاِنْ تَعُدُّوا نِعْمَةَ اللّٰهِ لَا تُحْصُوْهَا ط

معنی دا چه :

اوکه چیرته وشمیری تاسو ټول قسام د نعمتونو د الله (ج)، نو وبه نه شمیرلی شی ـ تاسې د الغمتونه د الله تر آخره پورې بیشکه انسان خامخالوی ظالم، ډیر ناشکره دی ـ نو دد غه خداوندی آیت مصداق تاسې بد بخت وګرځیدی چه له یوې خوانه هو د لوی خدای (ج) په بې شمیره نعمتونو سترګی پټی کړې له بله پلوه خلقیان پرچمیان یعنی دهریان او ظالمان شوی هم مو پر خپلو ځانونو، اولا دولنو ظلم وکړ ـ هم مو په افغانی بی وزله مسلمان ملت باندې ـ

انسان خو هغه ته وائی چه د خپل حقیقی او مهربان خدای د بی شمیره نعمتونو شکریه ادا، کړی او د همدې بې نیاز خدای ج په طاعت او عبادت مشغول شی او دده موجودیت، وحدانیت، خالقیت او رزاقیت د خپل فطری خلقت او شرعی مسئولیت په اساس ومنی ـ

او امرنی پر ځای راوړی ـ اوله نواهیو څخه ئې ځان او نور ماحول وساتی، تاسو دد غه رحمان اورحیم، علیم وسمیع، خبیرو بصیر خدای (ج) له وجود څخه انکار وکړ په مادیت او طبعیت پسې لاړی، دهریت او روسیت هو

اختیارکړ - ایمان وغیرت ، اسلامیت وحریت ،ابرو او شرافت ، افغانیت او امنیت موله لاسه ورکړ د روسانو غلامان او د بیګانګانو مزدوران او اجیران ګرځیدلی ، خپل ابوی او اجدادی اسلامی مقدس دین او مسلك ته مو په سپکه سترګه وکتل ، دافغانی مسلمان ملت او د خپل قوم او قبیلی خلک مو بی له کوم جرم ، جنایت ګناه وخیانت په زرګونو او لکونو کسان د قتل و قتال تکالیف اوکړاو سره مخامخ کړل - او په میلیونو افغانی سپیځلی غیرتمند د پت او عزت خاوند مسلمانان موله خپلو ودانو کورونو کلو اولسولو خوږ پلرنی او مورنی اواجدادی وطن څخه په هجرت کولو ، مال متاع پریښودلو مجبورکړل - نو تاسی پخپلو کړیوانونو کی لږ شان سر ټیټ نه کړی ، تفکر او تدبر وکړی چه ایا تاسی دد غو اعمالو نه کوم یو عمل د انسانیت ، شرافت ، ایمان و اسلامیت ، پښتون والی او افغانیت کیږی تاسو ته خپل ناپاك وجدان خرڅ شوی ځان ناقص العقل د غلامۍ او مزدورۍ مفکوره څخه مشوره درکوی چه ستاسی دغه ناوړه غیر انسانی اعمال او کردار د انسانیت او د بخښنی وړ دی ؟ نه خیر ځواب منفی دی.

۲ - هوښ نه خپل لوی خدای دخپل منور او منزل آسمانی رښتونی کتاب په دغه مبارک آیت کښې چه فرمائی:

وَلَقَدْ ذَرَأْنَا لِجَهَنَّمَ كَثِيرًا مِّنَ الْجِنِّ وَالْإِنسِ لَهُمْ قُلُوبٌ لَّا يَفْقَهُونَ بِهَا وَلَهُمْ أَعْيُنٌ لَّا يُبْصِرُونَ بِهَا وَلَهُمْ آذَانٌ لَّا يَسْمَعُونَ بِهَا ط أُولَٰئِكَ كَالْأَنْعَامِ بَلْ هُمْ أَضَلُّ ط أُولَٰئِكَ هُمُ الْغَافِلُونَ ۵

( ۹ جز د الاعراف ۱۷۹ آیت )

ددغه مقدس آیت کریمه معنی دا چه الله ج فرمائی او خامخا په تحقیق پیدا کړی دی موښ دپاره د جهنم (دوزخ) ډیر کسان له جن ( پیریانو ) او له انسانانو چه دی دوی ره دا سې بی معنی زړونه چه هیڅ نه پوهیږی دوی په ښه حق له باطله او دی دوی له دا سې بی فایده سترګی چه نه وینی دوی په ښه نښی د قدرت او ی دوی له دا سې بیکاره غوږونه چه نه اوري په

هغو سره آیتونه د الله ج - دغه کسان پشان د چارپائو دی - دنفسانی امورو په اتباع بلکه دوی چه مکلفان دی ، ډیر گمراهان دی له چارپایانو څخه دغه کسان - همدوے دی غافلان کاملاً په بی خبری کښی یعنی زړه ، غوږونه سترګی او نور کرد شیان ئی شته دے خو نه پخپلو زړونو کی په آیت الله کی غور کوی او نه د قدرت نښے نښانی د عمق او اعتبار په نظر مطالعه کوی او نه الٰهی خبرے د قبول په غوږونو سره اوری ځکه چه د چارپایانو کرد ادراکات یوازے د خوړلو څښلو او بهیمی جذباتو په دایره کی محدود دوے همدغسے د دوی حال هم دے چه د دوے زړونه ، دماغونه ، لاسونه ، پښے ، سترګی او غوږونه الغرض د الله ج نوری ورکړے شوی قواوے یوازے د دینوی لذایذو او مادی غوښتنو د تحصیل او تکمیل لپاره په کار اچوی او له انسانی کمالاتو د ملکوتی خصائیلو له اکتساب سره هیڅ سر او کار نه لری - بلکه ډکه غور وکړه شی نو د دوی حال له یوے لورے د حیواناتو له حاله هم بدتر دے ځکه چه حیوان د خپل خاوند په بللو راځی - او دده په رټلو او شړلو اوری ، مګر دوے له سره د خپل حقیقی مالك په غږ باندے غوږ نه ږدی - بلکه چه حیوانات

له خپل فطری قوا څخه همغه کار اخلی چه د قدرت له لورے د همغوی لپاره پیدا شوے دی اوله همغه ځنی زیات استعداد په همغوے کی له سره لشته - لیکن همغه فطری قوت او استعداد چه د روحانی او عرفانی ترقیاتو نه چه په دغه خالقوکی په ودلیت ایښود شوے دے ، دوے همغه د خپل مهلک غفلت اوبی لاری له امله پخپلو لاسولو سره ضایع او معطل کړیدی -

۳ - یوازے دا نده چی تاسولوے خداے په دغه کفری او دهری عقیده ؤعمل په دوزخ اوابدی زندان کښی اچوی ، دنیاوی څو ورځنی ژوند موهم د خپلی ناپوهی اوبی شعوری له امله شپه او ورځ د یو عالم خطراتو سره مخامخ کړیدے کوم یوئی چی د افغانی واقعی مجاهدینو لاس ته ورغلی وی اویا ورشی د خپل نیمه خوا کفری او دهری عقیدے او ژوند مزه او لذت به هولیدلی وی او یا به ئی وګوری :

۴ :- داچی انسان له یوه دښمن له خوف اوبیرے له امله د ځمکی په سر د هوسائی او ارامی ژوند نشی کولی اونه په لتوله معنیٰ بی غمه اوبی خطره وسیدلاے شی د شپی ئی خوب نه وی ، د ورځی یی سیر و سفر حال

۲ :- یا مشتق دے د (نُوَسْ) متحرك ته ویلی شی -

۳ :- یا مشتق دے د (اَنَسَ) او (اَنَسَ) لیدلو ته والیُ -

۴ :- یا مشتق دے د (نَسِیَ) نه او (نَسِیَ) په معنیٰ د هیرولو راغیُ -

ددغی تشریح او توزیع له مخی انسان په دغو ښکلو صفاتو موصوف دے - ددغو ښکلورو صفتونو له امله د حضرت آدم علیه السلام په ذریعه (ځوکاد) باندے د انسان نوم ایښودل شوے دے او ورته استعمال شوے نو باید عرض کړم چه انسان د حیواناتو په جنس کښی لیو مختار او مترقی حیوان دے او د همدے کسب او اختیار او ترقی کوونکی عقل او تمیز په لرلوسره دده نظام تکوینی او د حیات قانون ئی له نورو کردو حیواناتو ځینی داسے اعلی او ممتاز جوړ کړے شوے دے که اوس دے خپل ځان ته حیوان ووائی شرمیږی ، داځکه چی انسان ددغو اوصافو په لرلوسره د نیکو اوبدو په تمیز او مفیدو او مضرو په پیژندلو او د آغاز او انجام په پوهیدلو قادر او د کړم عمل په کولو یا پرلیښودلو

۱. چه تاسو خپل ځانونه د خپل ازلی دښمن شیطان علیه لعنت او د لورو په لمسه د افغانستان د ټول مسلمان ملت یا په بل عبارت د ټولې نړۍ د مسلمانانو او بشر دوستو انسانانو د ښمنان کړل، ستاسو به دنیاوي مستعار او ناقرار ژوند خو دول وي او اخروي حیات به هو په شه لټوکه وي چه تاسې پخپله کفري او دهري عقیده یقین او باور پرې هم نه لرئ لو دلته بیا بیرته داخبره دریاده کړم چه هغه بنکرور غوائي چه پخپل بادارني ظلم وکړا، سزاني دا شوه چه ده یا ده وارثانو پخپل لاس حلال غوسبنه او هره وکی ني قطره شوه خوبیا هم غوسبنه ني د خوړلو ده، بلکوم اخروي عذاب او سزا ورته نشته . تاسو خو له یوې خوا مردار او بله پلوه اګرچه عقیده او باور پرې نه لرئ لوي خدای هو په عقبا کې تعذیبوي او توهینوي او په ابدی لټوکه هو په دوزخ کې اچوي :

وَمَا هُمْ بِخَارِجِيْنَ مِنَ النَّارِ ط

اوار به پخپلو غوږولو واورئ خپل تعذیب او توهین به د سر په سترګو وګورئ .

۵- ترڅو دد غې باطلې او منحرفې کفري او دهري

لاړے شخه ونه کړځی د آبد دپاره د افغانی غیرتمند و شجاعو مجاهدینو له لاسه په هیڅ یو مکان او زمان کی په امن او امان شپی او ورځی نشی تیرولی . له ورځو نه یوه ورځ یادشیونه یوه شپه به ددغه ناولی ژوند سره کړها او طوعاً یعنی په خوښی او نا خوښی سره وداع وکړی . روسی او مسکوی لعنتونه به درته زهر قاتل وګرځی او دقیامت په ورځ به لوے خدائے په حضور کی په :

یٰلَیْتَنِیْ کُنْتُ تُرَابًا ط

ویلو قایل او مقرشی او چپلو دنیاوی کفری اعمالو به ندامت او حسرت ښکاره کړی .

لو باید :

تَنْبِیْهاً درته ووایم چه په هغه ورځ کی موبیا ژړا او واویلا ، ندامت وحسرت په درد نه خوری او نه به له خداوندی عذاب شخه ځانونه ژغورلاے شی او نه به مو اَحَدٌ مِنَ النَّاسِ ط مددګاری وکړاے شی . لعین لینن به مو په بله کنده ددوزخ کی پروت وی او برژنف لعین به مو په بله کنده او تاسو روسانو غولولی او شیطان شرمولی او دوکه کړی به په بل ځاے ددوزخ کی .

۲ - ددے دپاره چه ستاسو رندے سترګی څه نا څه بنا او فاسدے عقیدے هوحق ته مايلی شی او پخپلو سهوو اعتراف وکړی .

لونړه ستاسے سره دقلم په ژبی چه تاسو هم په ناولو لاسونو کی نیولی او په دروغو او ناپوهی سره دافغانستان د مسلمان اولس د سپيڅلو معصومو پچيانو فکرونه او ذهنونه پرے باطلی اوکږے غیر اسلامی لیارے په لورے را اړوی ، یو څو خبرے کوم هغه دا چه بنائی تاسے دنیا د لویے لوے کارخانی په شان وګڼری چه ډول ډول مختلف ماشینونه په کی لګول شوی دی ، څنی لوګران اوبی او څنی ئی ورهکوی ، هغه بل ئی کتابونه چاپوی ، یو دښارولو دپاره برېښنا پیدا کوی ، څنی باد پکی چلوی او یا داسے نور په هر یوه ماشین کی ډیرے پرزے دی چه د ماشین دغرض په لحاظ په یوه هغینه اندازه سره جوړے شوی او په مناسب ځاے کی لګولی شویدی . بیا دغه کوم پرزے په تا کلو ځایونو کی اچول شوی او ماشین ئی تکمیل کرے دے کله چه دغه کرم ماشینونه سره روغ جوړ ، ساز او سنبال شول دلته د برېښنا قوت ورخوشے کیږی چه سمدستی په یوه شیبه کی هغه ټول ولاړ او چُپ ماشینونه له خپل جوړښت

او مقرر حرکت سره سم چلیږی ، تاویږی او په راز راز
چارو بوخت او لګیا کیږی او هغه برقی قوه هره پرزه
او هر څرخ او لوز د خپل مخصوص جوړښت او غرض سره
سم چورلوی او په حرکت ئی راولی ستردے چه هغه لږه
یا ډیره برقی قوه چه چراغونو او کړ ولولو ته رسیږی د
همغو شیانو رنګ او هڅ ځان ته غوره کوی .

سترګه ورو ړندو که چیرے لږ ژور فکر وکړهٔ او
د سترګو د ظاهری بنائی څخه کار واخلی ، نو په دغه مثال
سره دغه خبره ښه واضح او ښکاره شوه چه د ماشین
کالبوت جوړول او بیا د هغه ګرده پرزے په سمه برابره
اندازه برابره ول . او بیا له بله سره لګول او نښلول یوه
سلسله مقدماتی کارونه دی چه د هغه له تکمیل څخه
وروسته د دغه ماشین د چالانولو دپاره د یوه بل شی را-
وړلو ته هم ضرورت لرو چه هغه محرکه قوه ده عام له
دے چه برق وی یا بخار یا نور همداسے . وپوهیږی
چه بلا تشبیه الله تعالی د آسمانونو او ځمکی ګرد ما-
شینونه جوړ کړل چه هغه ته خلق ولی نو په دے
لحاظ هوښیار الله ج ته خلاق وایو نه داچه تاسو بی شعو
رانو او بی عقلانو ، ناپاکانو او سفاکانو د خپلے خلقی ډلی مشر

شیطان تره‌کی علیه لعنت ته د ۱۳۵۷ مش کال دغوائی د میاشتې د (۸۷) نیټې نه راپدی خوا تر هغه وخته پورې چه ستاسو دویم غوائی غیر امین دده وفادار شاګرد پخپل لاس دے مردار او ابدی زندان (دوزخ) ته ئی وسپاره د دیرو لوړمولو په قطارکی به مو وریته د خلاق نوم هم اخست . دخپلی بی عقلی اوبی شعوری له امله په دې باندې هم نه پوهیدی او نه دخدا ے د مخلوقاتو شرهیدی چه یوناولی او دلوے خدا ے ج دلوئي خدائی نه منکر او روسی لوړکر انسان باندے هود فرعون ، شداد ، نمرود علیهم لعنت په شان دخدا ے ج نوم ګیسنود . بیا هم نه شرمیدی چه دعرهرد جهال و یعنی د مشرکینو په څیر موږ خپل خدا ے په ناولو او نه مریدو نکو کیدوکی واچاوه ، نیست او نابود موږ کړاوه - لوړ دے خبرے ته باید لږ شان ځیر او متوجه شئ چه ستاسو مشر غوائی (تره‌کی) علیه لعنت یا داسے لوړ انسانان خلاق کید لاے نشی او نه دخلاقیت اوصاف په ځان کی پیدا کولاے شی - کله چه الله تعالی دیر توصیفی نومونه لری لوړ دده دهر نوم آثار سترګه ورو او دیده ورو دعقل لرونکی خاوندانو دحق او حقیقت په سترګه لیدلی ، کوری اووینی . ددې دپاره چه تاسو هم لږ شان دده د توصیفی لوړمولو په ثبوت

معنیٰ حقیقت او وا قعیت باندے خبر شی لنو غوارم چه په دغه برخه کی اختصاراً یو څه معلومات درکړم :

۱- داچه لوے خدائے د انسانانو او یا نورو غیر ناطقو حیواناتو په بدن کی دخپلو مخصوصو وظائفو د سرته رسولو او اجراء کولو لپاره هره وړوکی اولویه پرزه ئی په سمه برابره اندازه جوړه کړه هغه ته تقدیر ویلے شوے دے، لکه لوے خدائے په منور او منزل کتاب قرآن عظیم الشان کی ځائے پر ځائے دغه کلمات او الفاظ راغلی دی :

قدره تقدیرا : دهمدغه بی شمیره ماشینونو پرزو نښلولو او ځائے پر ځائے کولو ته تصویر وائی لکه چه په دغه برخه کی د لوے خدائے آسمانی کتاب قران کریم داسے لارښوونه کوی :

خلقناکم ثم صورناکم : دغه کرد افعال دخلق په شق کی راځی چه خلاق ئی الله ج دے نه بل څوک دلته ددے خبرے د توضیح ضرورت هم شته هغه داچه هرهغه ماشین چی دکوم کار دپاره درول شوے دے باید په هم هغه کار ولګول شی بالاخره د ماشین دچالانولو دپاره د الله جل الله امر یعنی محرکه قوه برق ، بخار ، فشار او نور پرے خوشی کړے شول - ددے مصداق د البارئ له اسمه « لنوم »

ځرګندیږي لکه چه فرمائی: ا

الخالق الباری المصور.

لنډه داچه له هغهٔ له طرفه حکم وشو چه وچلیږه ، نو سمدلاسه وچلید او د الله تعالیٰ همدغه امرته :

اِنَّمَا اَمْرُهٗ اِذَا اَرَادَ شَیْئًا اَنْ یَّقُوْلَ لَهٗ کُنْ فَیَکُوْنَ

وائی . د یاسین د (۵) رکوع په بل ځائے کی په وضاحت سره د کُنْ اَمْرِیْ د جسد په خلق مرتب کړی او ویلی دی

خَلَقَهٗ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ قَالَ لَهٗ کُنْ فَیَکُوْنَ .

د علمی تحقیق او پلټنی څخه ظاهریږی چه په قرآن مجید کی د کُنْ فَیَکُوْنَ مضمون په څومره ځایونو کی چی راغلی دی عموماً د خلق او ابداع له ذکر څخه وروسته راغلی دی چه له هغه څخه داسے یو خیال پیدا کیږی چه د (کن) کلمه به د خلق له خطابه وروسته د تدبیر او تصریف اودلوړو دپاره وی والله اعلم :

په هرحال زه غواړم چه داسے ووایم چه دلته دامر معنا حکم دے او هغه حکم همدا دے چه د (کُنْ) په لفظ ترے تعبیر شوے دے . او د (کن) لفظ د کلام له هغه جنس څخه دے چه د الله تعالیٰ له قدیمه ؤصفاتو څخه دے لکه څنګه مونږ د لوے او احکم الحاکمین خدائے ټول صفات مثلاً : خلاق ، حیات

سمع ، بصر او داسے لوړ بلاکیفه منو یا ددے لپاره چه تاسو
وپوهیږی چه واقعاً الله ج ـ علیم او خبیر دے لو باید روښانه
کړم چه الله ج د خپل قدیم علم او کاملی پوهی له مخے د عقل او
بصیرت عقیدے او ایمان خاوندانو ته په دغه مبارک قرآنی ،
ایت کریمه داسے خبر ورکوی :

وَلَقَدْ صَرَّفْنَا لِلنَّاسِ فِیْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ مِنْ كُلِّ مَثَلٍ فَاَبٰی
اَكْثَرُ النَّاسِ اِلَّا كُفُوْرًا ٥

( ۱۵ ، جز د بنی اسرائیل د سورة ) (۸۹) آیة

ترجمه ، او خامخا په تحقیق مکرر بیان کړی دی موږ
خلقوته دے قرآن کی مثل له هر قسمه مثاله لکه : ترغیب ،
ترهیب ، قصص او اخبار چه عبرت پرے واخلی نو وما ته
زیاتره خلقو او راضی نه شول په هیڅ ، مګر په نا شکری او
انکار له حقه یعنی د دوے د خیر غوښتلو د پاره عجیب وغریب
مضامین څو څو ځلی په مختلفو اسالیبو او په قسم قسم عنوانو
په دے قرآن کی بیان شویدی ، لکن زیاتره ناپوهانو د هغو
قدر ونکړه او د احسان منلو په ځاے ناشکری ته ملا وتړله
لکه تاسو سفاکانو او بد بختانو ، له عقل او شعور نه خلاصو انسانانو
(۱۲۵۷) هوش کال د غوائی د میاشتے د (۷) نیټے دغت او بنکرو رعوائی
یعنی تره کی بچیانو د روس علیه لعنت حلقه په غوربو غلامانو مزدورانو

دکفری اودهری عقیدے او نظرئی خاوندانو او دلوئے خدائے له وجوده منکرانو :

۸- مونږ ته دا خبره پوره معلومه او ښه ښکاره ده چه تاسو د ټولو مومن به شیانو څخه منکریاست مګردا هم راته روښانه ده چه دا کومه لوئے خبره نده ستاسو پشان لمړنو کافرانو به هم زمونږ ګران پیغمبر حضرت سیدنا محمد مصطفیٰ ته ځواباً داسے ویل چه قرآن عظیم الشان د هغې حکایت داسے کوی : ءَ اِذَا کُنَّا عِظَامًا وَّ رُفَاتًا ءَ اِنَّا لَمَبْعُوْثُوْنَ خَلْقًا جَدِیْدًا

ترجمه : ایا کله چه شو مونږ هډوکی او خاورے ریژیدلی ایا مونږ خامخا بیرته پورته کاوه شو په پیدا ایښت نوی سره ددے دپاره چه دوے د کائیناتو او موجوداتو ، بالخاصه د مکلف مخلوق لکه جن او انس ددویم ځل رالیښتونی پیدا ایښت ته ښه متوجه او له خپلے کفری عقیدے څخه تیر شی، لوئے او قدیر خدائے چه پل آسمانی واقعی کتاب کی دوے ته داسے دلائل وړاندے کوی او فرمائی :

اَوَلَمْ یَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ الَّذِیْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ قَادِرٌ عَلٰۤى اَنْ یَّخْلُقَ مِثْلَهُمْ وَجَعَلَ لَهُمْ اَجَلًا لَّا رَیْبَ فِیْهِ ؕ فَاَبَى الظّٰلِمُوْنَ اِلَّا كُفُوْرًا ۝

ترجمه : ایا نه دی لیدلی دوے او نه دی خبر په دغه چه

بیشکه هغه الله چه پخپل کامل قدرت سره ئې پیدا کړي دي، آسمانونه او ځمکې، قادر دے په دے چه پیدا کړي په مثل د دوے لوز او مقرر کړے ئې دے دوے ته یو اجل یعنې نیټه چه نشته هیڅ شک په هغې کې. لوزمخ راوا روه او ونه منل ظالمانو هیڅ شي مګر نا شکري او انکار له بعث او حشر څخه یعنې لوے ذات چه د ومره لوے اجسام ئې پیدا کړي دي نو ایا هغه ته ستاسے پشان دیوه وړوکي شي پیدا کول څه اشکال لري په دے برخه کې حضرت مولانا روم څه ښه فرمایلي دي:

کوزه ګر ګر کوزه ئې را بشکند

چون بخواهد باز هم قایم کند

همدغه موضوع لوے خدائے په دغه مبارک آیت کې داسې روښانه کړیده:

لَخَلْقُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ اَكْبَرُ مِنْ خَلْقِ النَّاسِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ۝ (۲۴ جزء)

بیشکه چې الله ج تاسے او لوز کړه انسانان بې تکلیفه پیدا کولې شي او مقرر کړے دوے ته یو اجل (نیټه) چه نشته هیڅ شک په هغې کې یعنې بنائې داسے ووائې چه آخر دومره خلک چه مره شوي دي هغوے ترا وسه پورے ولې نه دي ژوندي شوي، نو ځکه فرمائې چه د دغو کړد و مره کیدلو او د بیا راژوندي

کښې فی الجمله آزاد دے ، لوځکه ده ته دالله تعالیٰ له جانبه داسے علامې سنوولې کیږې چه په هغو کښې د فکر او غور کولو موقع وموندله شي او د فکر او کسب د فطرې آزادې سلب کوونکې نه وی. که انسان د الله تعالیٰ په ورکړے شوو عقلی بصیرتی او داسے نورو مدرکه قواؤ سره په بنه ډول غور او فکر وکړی . لو ده ته به د حق او باطل د نیک او بد په تمیز کښې هیڅ مشکلات نه پیښیږی او که چیرے همدغه انسان بلا تفکره او بلا تدبره د یوه عمل چه هغه ضد انسانی ضد فطری او ضد اسلامې وی ، مرتکب کیږی اویا همدغه راز د داسے ځان او جهان هلاك کوونکې نظریاتو او فاسده عقایدو تابع کرځی لو دا انسان شَرُّ الْبَرِيَّه او د عادی حیواناتو هم بدتر ، دنیا او آخرت کښې در په در او خاورے په سر دی . ځکه چه دوے په عین انسانیت او فطری خلقت کی د حق او حقیقت ، تمیز و بصیرت سترګی خوړلې او د ړندو اوصاف ئې ځانونو ته غوره کړی او په کنډو اوکپرو سم شوی ، دځان او جهان هلاك کوونکی عناصر ګرځیدلی دی . لو دغه ډول کسانو

کیدلو او دقبر شخه دپاشیدلو دپاره یووخت مقرر دے چه هغه ضرور راتلونکی دے . ددغه تاخیر دلیدلو څخه له هغه څخه انکار حماقت دے . که بیا هم ددغه قرآنی دلایلو دتشریح کولو سره سره دحق په سترګه ړانده په غوږولو کاڼه یاست او په زړولو پانده درته دکفر تیاپه لګیدلی وی بیا چه موږ څه خوښه وی هغه کوئ ځکه چی دینی ارشاداتو دداسے بی حیا او بی شرمه کسانو په برخه کی داسی فیصله صادره کړیده : اِذَا فَاتَکَ اَلْحَیَاءُ فَفْعَلْ مَاشِئْتَ : ترجمه : کله چی دے حیا پرلیښوده کوه هغه چه دے خوښه وی .

# شعر

چه هدایت ئی په نصیب له پاك مولیٰ نه نه وی
دوے ته هادی په مخ دځمکی میاء ملاؑنه نه وی

*

دوے چه څه کړی هغه کوی څوك څه ویلی نه شی
د دوے له شره بنی نوعه خلاصیدلی نه شی

*

دوے خود مارلـړم پښتان خلکو کی زار خپـروی
دا ســے مضرحیوان پـه ډاکـه ژوند کولی نه شی

*

دغه مثال دخلق ، پرچم لعین روسی ویـنه
وشیق ، خبـر ورتـه کـوی خو پوهیدلای نه شی

*

گرانو او درنو لوستونکو ! ددغه کتاب په تیرو شوو
پاڼو او صفحاتو کی د الله تعالیٰ دتوصیفی نومونو په هکله
یوڅه توضیحات او معلومات هغو بی دینه اوخدائے نامننکو
انسانانو په معنیٰ اوحقیقت کی چار پایانو ته ورکړل شول چه یا
خو دوے بیخی له لوے او توانا خدائے ج څخه منکر دی یا دا چه
یو دهری اوخدائے نامننکی انسان باندے دچلی بی علمی ، ناپوهی
اوجهالت له امله د رب العلمین ، آلحم الرحمین خدائے نوم بردی
ددغه بحث او بیان څخه وروسته به اوس دغو بدبختانو او
ازلی شقیانو ته د الله ج دهغے کارروائی او برابری په برخه
کی د قرآنی لارښوونو په رڼاکی یوڅه معلومات ورکړم چه تر
دتل لپاره دهغو کارونو د کولو او انجامولو څخه عاجز د تغیر او
تفکر په ډنه کی ډوب تللی دے . هغه دا چه دغه دلوے خدائے ج د
خدائی نه منکر انسان ولی دآسمان په دومره وسیع او هسک

اوبى له ستنى پيدا کولوکى اودځمکى په دومره پراخ اومضبوط جوړولوکى اوله ځمکى څخه د اوبوپه راخوټولوکى اودشپى او ورځى په بدلولو، لنډولو ، اوږدولوکى اوپه سيندولوکى د سيرليوپه تګ اورانګ کى اوله آسمانونوڅخه د اوبوپه اورولو کى اود باران په اوبوسره دځمکى دمخ په شنه کولوکى اوپه هغه کى دګرډوحيواناتو په ژوندانه اوهستوګنه اوددوى په تولد اوتناسل کى اودنورو موجوداتوپه وجود اودهغوى په نشونما «وده» کى اودمختلفوجهاتوڅخه په راز رازهوا اوبادونو چلولوکى اودآسمان اوځمکى ترمنځ دوريځو په دړولوکى ، په دې ټولو اونورو شيانوکى د الله تعالى په موجوديت اووحدانيت او دده په قدرت اوحکمت اورحمت باندې هغه چالره لوې لوې دلايل اوډيرشواهد شته چه دعقل او فکرخاوندوى ، ددغو دلايلو اوشواهدوسره سره بيا هم ستړګه ور ړانده يعنى خلقيان اوپرچميان او ددوې استادان او باداران يعنى روسان دلوى خداى له خدائى اووجود څخه انکاربى اوبى لنظيره کفار دى. دوې دعربو د مشرکينو پيشان مثله لين عليه لعنت په خداې سردارى خپل مربى ګرځولى دې څه چه هغه لعين دخپل ناولى ژوند په دوره کى کړى اوياى ويلى دى دوې بى له تعقل ، تفکر او تدبره څخه دهغه بشريت

او انسانیت د ښمن اعمال او اقوال تعقیبوي او کوي ـ نو دلته باید ووایم چه دد غو بد بختانو او لزلي کافرانو مینه او علاقه بې اساسه او بې بنیاده ده . نه به په دنیاوي ناولي ژوند کې خوشحاله شي او نه به له دنیاوي نعمتونو څخه دیو کامل او عاقل انسان په صفت خوند او لذت واخلي .

د افغانستان په دغه روان مقدس جهاد کې به ډیرو کسانو د سر په سترګو لیدلي وي چه ډیرو خلقیانو او پرچمیانو او ددوی بادارانو یعنی روسانو مزاري خوږې خټکي او کابل د ښکلو او کهنو باغونو خوږه انګور او داسې نورې خوندورې او لذیذې میوې په لاسونو کې نیولي او مردارو خولو ته یې رانژدې کړې وي ، دلوی خدای ج د سپیڅلي لارې سپایانو یا په بل عبارت د واقعي مجاهدینو په لاسونو لوټه لوټه او قطره قطره شي له دغو نعمتونو څخه برخه نۍ په لمنو ، قابونو ، او داسې نورو لوښو کې او څه برخه نۍ په ستونو کې بند پاتې شي خپلې مردارې ساوې ،، روحونه دلوی خدای د قهر او غضب سپایانو ته تسلیم او سجین ته یې وسپاري .

## شعر

خدای دې داسې ژوند ورنکړي هیڅ احد ته
چه ورو سپاري خپل روح په حال د کفر کي صمد ته

*

دلته د دښنه توضیح لپاره باید روښانه کړم چه دحق او باطل مقابله او مبارزه کومه نوې خبره نه ده . دا جریان له آدم ع تر دې دمه اوله نن نه به تر قیام قیامته پورې روان وي . خود کفري او دهري نظریئ خاوندان باید پوه شي چه په لوې خدای مینان ، د آسماني دین عاشقان ، د محمدي شریعت دین بلبلان د خپل حقیقي بادار ، د دنیا او آخرت واکدار او د کونینو سردار حضرت محمد مصطفی ص ، او د خداوندي کتاب قرآن عظیم الشان سره داسې مینه او محبت اخلاص و صمیمیت لري چه ستاسې کفري او دهري مینه خو یا ورته سلام اچوي یا دا چه د مقابلي او مبارزې په وخت کي ترمینه په تانکونو او طیارو کي پټ کړ زي ، یا ترسینه دلوړو او دنګو دیوالونو خوا ورشا ته پټیږي . تاسو که د کفر او الحاد لینن او برژنف[1] سره مینه لری په باطل مسلك او فاسده

---

(۱) - پته دې نه وي یا نه چه محترم مؤلف دد ې کتاب متن د برژنف په ژوندکي لیکلی دی . مگر زه ئې په دې داسې حال کي چاپولو ته تیاروم چه دوه ورځي مخکي برژنف علیه لعنت د افغانستان د قهرمان ولس د غلا مولو ارمان د ځانه سره دوزخ ته یوړ . (کاتب)

عقیده څانونو ته آبدی اوخداوندی زندان یعنی دوزخ ته سپاری. ستاسو نه ډیر زیات د ایمان او اسلام خاوندان، په خدای او رسول عاشقان د الله ج سره مینه او محبت، اخلاص او صمیمیت لري، ددې د پاره چه خالص او مخلص مومنانو د ایمان او عقیدې د خاوندانو علاقه او محبت، الله ج ته په پوره معنیٰ څرګند دې. دکفارو د مینې او محبت په هکله چه دوی د باطلو معبودانو سره لري، حضرت محمد (ص) ته د قرآن کريم په ژبه د کاملو مومنانو د مینې او محبت حالت او کیفیت داسې بیانوي:

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اَشَدُّ حُبًّا لِّلّٰهِ ط

یعنې هغه محبت چه مشرکین ئې له خپلو باطلو معبودانو سره لري مومنان له هغه څخه خورا زیاته مینه او محبت له الله ج سره لري ځکه د مشرکانو مینه د دنیا په مصائبو زایلیږي او د آخرت د عذاب د لیدلو په اثر دوی له خپلو باطلو معبودانو څخه بیخي بې زاره کیږي، بالعکس د مومنانو محبت او مینه له خپل پاك الله سره پر راحت او مصیبت په روغتیا او ناروغتیا، په دنیا او آخرت، په پټه او ښکاره کې برابر او هیڅ تغیر نه مومي او تل دوام داره او باقي وي. او هم هغه محبت چه اهل ایمان ئې له الله ج سره لري له هغه

محبت ځني خورا ډېر اوزيات دي چې مؤمنان يې له ماسوا الله
يعنی انبياؤ، اولياؤ، ملائکو، عابدانو، صالحانو، علماؤ فضلاؤ
اباؤ، اجدادو، اموالو، اولادونو، ښځو، دوستانو، دنيا
اومافيها سره لري ځکه چې مؤمنان له الله تعالی سره د
هغه د عظمت اوشان سره سم بالاصالة او بالاستقلال مينه
او محبت لري اوله نورو سره بالواسطه او د حق تعالی له
حکم سره سم له هريوه سره د هغه د مرتبې او مقام په
ميچ (اندازه) مينه کوي، هو د الله تعالی د ماسوی الله
جل جلاله په محبت او مينه کې مساوات او برابري کول که هر
څومره هغه لوی سړی هم وي خالص شرك او د مشركانو کار
دی نو نه پوهېږم چه د دغو بد بختيو خلقيانو او پرچميانو او
د دوی د بادارانو تشبيه له چا سره وکړم، ځکه چه دوی
خوعياشې او فحشاشې داسې ژورې تورې تيارې کندې ته
ورگذار کړي دی چې:

(د سترگی پټې ننی آيه)

مثل مصداق گرځېدلي د خدای په لويه او پراخه ځمکه
گرزي د لوی خدای د وسيع نی ځمکی په سريې هر ډول
نعمتونه خوړلي او خوري اما د هم دغه مُنعِمْ او بی نياز خدای
په حقه او ثابته خدائی سترگې پټې کړي خپل ځانونه يې د

يو حيوان صفته وحشي ځناورو « روسانو » غلامان او بنده ګان ګرځولي دي . خير دا ورځ لري نه ده چه الله ج په دغه مبارك قرآني آيت كريمه كي يادونه كوي . دخپلو اعمالو نتايج اوعواقب به دس په سترګو وګوري

وَلَوْ يَرَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا اِذْ يَرَوْنَ الْعَذَابَ اِنَّ الْقُوَّةَ لِلّٰهِ جَمِيْعًا وَّاَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ

( ۲ جزء البقرة سورة ۱۶۵ آيت )

يعني هغه ظالمان چه الله تعالیٰ سره شريكان پيدا كوي كه دوى دا خپل باطل معبودان په راتلونكي وخت كي ووينې چه څرنګه دا معبودان سره د عابدانو د الله تعالی په عذاب كي آخته كيږي اوهيڅ څوك نه وي چي دوى له سختو عذابونو څخه وژغوري . هلته به ولپوهيږي چه كرد زور اوقوة خاص الله تعالیٰ لره دى اود الله ج عذاب خورا سخت دى لنو دوى به هيڅ چيرى د الله تعالیٰ له عبادت څخه مخ نه اړاوه اولوړو شانوته به نه متوجه كيدل اونه به ئې له دوى څخه د منفعت اوګټي هيله اواميد كاوه .

درب العٰلمين اوارحم الراحمين خداى ج له ربوبيت او الوهيت څخه منكر اوپه هومن بـﻪ شيانو كافرانسانان دي دافكرله مغزو څخه وباسي چي ګني اُخروى ژوند خويا

نشته اوکه بیاوی هم داسے تکلیفونه، عذابونه او توهینونه به نه وی لکه چه رب العلمین اودقرآن عظیم الشان مُعَلِّمِیْن او مُبَلِّغِیْن ئی والی . کیدا ے شی چی څه قدرے تخفیف اویا ترینه په عذراو زارو اویا بله کومه ذریعه اووسیله ځان خلاص کړی لوددے لپاره چه لا تراوسه پورے دوے ددغی سختی اوهیبتناکی ورځی سره نه دی مخامخ شوی اونه دقهارخدا ے محاسبے ته وړاندے شوی . لوے خدا ے دخپل لطف اواحسان کرم اوانعام له مخی چه دخپلو بنده گانو بالخاصه د مسلمانانو اود حضرت محمد ﷺ د اُمتیانو سره ئی لری د قرآن کریم په ژبه داسے خبر ورکوی :

اِذْ تَبَرَّاَ الَّذِيْنَ اتُّبِعُوْا مِنَ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْا وَرَاَوُ الْعَذَابَ وَتَقَطَّعَتْ بِهِمُ الْاَسْبَابُ ٥

کله چی بیزاره شی هغه کسان چه متبوعان، مشرکان دی له هغو کسانو څخه چی تابعان «اوکشران» دی اووینی دوے عذاب او مُنْقَطِعْ «غوڅ» شی په دوے هغه ټول اسبابونه دخپلوی علایق لیعنی هغه وخت به داسے وی چه متبوع به له خپلو تابعانو څخه بی زاریږی او بنانو او بت خوسبوونکو په منځ کی به هیڅ علاقه اورابطه نه پاتے کیږی

او یوله بله سره به د الله تعالیٰ د عذاب له ویرے د ښمنی
کوی . لکه چی د دوے حالت او واقعیت قرآن عظیم الشان
داسے بیانوی :

وَقَالَ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْا لَوْ اَنَّ لَنَا كَرَّةً فَنَتَبَرَّاَ
مِنْهُمْ كَمَا تَبَرَّءُوْا مِنَّا ط

او وائی هغه کسان چه تابعان وو . کاشکی وائے
مونږ لره بیا ورتلل د نیا ته ، نو بیزاره به شو مونږ
له دے متبوعانو څخه لکه چی بیزاره شوی دی دوے
له مونږ څنی یعنی مشرکان به په هغه وخت کی وائی که
مونږ یو ځل بیا دُنیا ته ولاړ شو نو مونږ به له هغوئ
څنی خپل انتقام او کسات واخلو او همغسے چه دوے
نن له مونږ څنی بیل او جلا شوی دی . مونږ به هم هلته
د هغوے خواب همداسے ورکوو او بترے بیلیږو به مگر لدے
محالی او نه کیدونکی ارزو څنی به بیله افسوس او حسرته
هیڅ یوه گټه او منفعت په لاس نه ورځی :

محترمو لوستونکو !

د دغه قرآنی آیت د تشریح او توضیح په ارتباط به یولنډ
او مختصر شعر چه عنوان ئی دے « د ابیان » خلقیانو او
پرچمیانو او د دوئ بادارانو ته اخباراً او اخطاراً وړاندے کړم :

او انسانانو په برخه کښې د محترمو لوستونکو فکر ونظر دځپل دغه شعر معنیٰ او مفهوم ته راګرځوم چه عنوان ئې دے :

# چه د سر په سترګو روند وی

چه د سر په سترګو روند وی له کمروځنې کولیږي
سمه صافه لاره پریږدی په کنډرو روانیږي

*

خدایه دا صفت ورنکړے په دنیاکې هیڅ انسان ته
چه په روغو سترګو روند وی د باطلو تابع کیږي

*

دے اول دښمن دځان شی بیا جهان ته سرایت کړي
چارپایې سل ځلې ترے ښهٔ دی خه که دا انسان یادیږي

*

نه ئې دنیا نه آخرت شی خوشی خرله دنیا تیرشی
په دے لاره به ځوك نه ځی ای وثیقه که پوهیږي

*

# دابیان

دابیان د مشرکینو چه وکړو پاک قرآن
مقرر دے د واړو د لوته عقبا کی تیز نیران
خلاصید لاے له عذابه په زارو په عذر نشی
حکایت د دغی کړے په قرآن کی رب منان۔
خلق پرچم چه تره کی ته لاړ زوال خلاق پلیو
چیرته لاړو بد بختانو لږ خوئی وکړه څه بیان
حفیظی هو هم مردار شو روح ئی وسپاره قهار ته
په قیامت کی به ئی وینی حال احوال ددے شیطان
د کارغل هم وخت نژدے دے ځان خبر کړی له احواله
مردار ژوند به ئی ختمیږی خلاص به نشی په هیڅ شان
پاکه خاوره د افغان کی به اسلام او مسلمان وی
وشیق والئ چلید لاے پکی نشی خلق پرچم و شورویان

*

ددغه کتاب د بحث و بیان له امله به ډیرو محترمو افغانی مسلمانانو د ایمان او غیرت خاوندانو ته شعرائیو پیشنهاد هم وړاندے کړم چه عنوان ئی دے : «ورښکاره توره غیرت کړه»

# وربنکاره توره غیرت کړه

وربنکاره توره غیرت کړه اے افغانه شوروبانو ته
میرویس خان احمد رایاد کړه گذارورکړه کافرانو ته

کارنامو د احمدشاه د محمود ته نظر وکړه
درس اوسبق ورکړه خدائے منکرو ظالمانو ته

هیر ترینه تاریخ د افغانانو ښن زمان کی دے
افغانی تاریخ وریاد کړه دے بدبختو ملحدانو ته

د قلم په ژبه ماورته څه وعظ ونصیحت وکړو
وثیقه. خدائے دے وکړی چی کافی شی دے دهریانو ته

*

# شکریه او منته

د ډیرو خوږو او درنو لوستونکو !
په اسلامی جامعه بالخاصه د اسلام او د کفر د مبارزے

مقابلې او شخړې په وخت کې چې ټول عالم اسلام د کفر او الحاد سره خونړۍ او چپاړ له کبله د خوف خطر یا په بل عبارت د تباهۍ او بربادۍ سره مخامخ او لاس په ګریوان دي د یو مسلمان د بل مسلمان سره ملګرتیا او د مرستې لاس ورکول هغه اساسي اصل دی چه د لوی خدای نه په را لیږل شوی کتاب قرآن کریم کې ئې په ډیر اهتمام بیا بیا تاکید شوی او ډیر نبوی احادیث په دغه باب کې موجود دي . الله تبارك وتعالیٰ جل جلاله فرمائي :

وَتَعَاوَنُوْا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوٰى وَلَا تَعَاوَنُوْا عَلَى الْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ ۞ سورة مایدة

د ذکر شوی او لوستل شوی قرآنی مبارك آیت ترجمه او معنیٰ : او مرسته وکړئ په نیکۍ او تقوی کې او مرسته مه کوئ په ګناه او ظلم کې . د تعاون کلمه په مطلق ډول په مالي ، فکري ، لساني او بدني معاونتونو مشتمله ده چه سړی باید له لوز و نه هیڅ ډول مرسته او کومك و نه سپموي مګر په ښه نیکه او خداوندي لاره کې او په ښو بالخاصه په جهادي چارو کې ، که څوك په ګناه ، تعدیٰ یا تجاوز کې له بل سره مرسته او تعاون غواړي دا راز مرسته جائز نه بلکه د هغه ایسارول او منع کول هغه سره مرسته

او معاونت دے . خلاصه داچه د تعاون په برخه کی د مالی مرستے یا په بله معنیٰ د مالی جهاد سپارښتنه په قرآنی آیتونو او نبوی احادیثو کی زښته ډیره شوے ده یعنے محتاجو اوبی وزله او محرومو کسانو سره مالی مرسته او د خدا- وندی لاره کی مال ښندل د اسلام د مقدس دین دپر مختګ دپاره په مال او سر جهاد کول د ایمان او اسلام ډیر مهم رکن دے چی هم د زکوٰة په صورت کی په بندیانو فرض دے او د خیرات او صدقاتو په ډول په صالحو اعمالو کی ډیر لوړ مقام لری . ددے لپاره چی د قرآن عظیم الشان په ټولو مکرمو آیتونو کی لوے او توانا خدائے په مؤمنانو باندے د « اَیدِیْ » او « رَاْسِیْ » یا په بل عبارت له ځانی او نفسی جهاد نه مخکی مالی جهاد فرض کړیدے او ددے تیاری ، برابری او ښندلو امری وربته کړے نو کامل مؤمنان د ایمان او عقیدے خاوندان که واقعاً ځانونه مؤ- منان ، د خداوندی کتاب پیروان ، په خدائے او رسول عاشقان ، د خلقیانو ، پرچمیانو او د دوے د بادارانو یعنی رو- سانو او بشر د ښمنو تش په بڼه او شکل انسانانو د ښمنان بولی او په واقعی توګه د خپلے اسلامی خاورے او هیواد حلالی خو- ځادوی او د خپل ګران وطن آزادی او استقلال او دیو واقعی

اسلامي حکومت راتګ او استقرار د قرآني احکامو او محمدي شریعت تنفیذ او جریان غواړي دوی به په دغه روان فرض او مقدس جهاد کې هیڅکله او هیڅ وخت د لساني ، مالي ، تعلیمي ، سیاسي ، ایډیالوژیکي او ارشادي جهاد څخه لاس وانخلي په دغه ډول خداوندي اسلامي لاره کې به مالي تاوان او نقصان د خپلې ایماني او اسلامي عقیدې له مخې ګټه او مفاد ، ځان جارولو او قربانولو ته به ابدي ژوند او حیات وائي . د همدغې ایماني او اسلامي عقیدې د عللو او عواملو په پیروي او اطاعت دغه کتاب چې د دیرو محترمو لوستونکو او د نړۍ د ټولو مسلمانانو او لبشر دوستو انسانانو حضور ته تقدیم شو . دا یوازې دیو واقعي افغاني مسلمان په خدای رسول او وطن عاشق انسان ، مجاهد ورور حاجي عبدالقدیر خان چې د حاجي آغا میر خان خوی په قوم مهمند او د ننګرهار ولایت د رودانتو د ولسوالي او سیدونکی او په او سنیو شرایطو کې د افغانستان د دهري او کفري حکومت د ظلم ستم له لاسه را مهاجر شوی او د نورو افغاني مهاجرینو پشان ئې ژوند . د ګران اسلامي ورور کاوندي هیواد پاکستان په اسلامي خاوره او هیواد کې هستوګنه غوره کړیده ، په شخصي او ځاني مصرف په زرو ټوکونو کې چاپ شوی او طبع شوی دی

لوے خدائے دے دخپلی حق او رښتونی وعدے په مصداق چه د واقعی مسلمانانو، دایمان او عقیدے خاوند انو سړ ئی پخپل منزل آسمانی کتاب کی کړیده پوره پوره اجر او ثواب په دواړو دارینو یعنی دنیا او آخرت کی ورپه برخه او نصیب کړی . دده امثال دے الله ج په افغانی او دنړۍ په ټولو مسلمانانو په خدائے او رسول ، دین او وطن عاشقانو او پتنګانو کی پیدا کړی او زموږ ګران اسلامی هیواد دے ارحم الراحمین خدائے او داسے نور مسلمان ملکونه او هیوادونه دے پخپل لطف او احسان غالب قدرت او کامل طاقت دکفر او الحاد دتصرف ، تعرض ، سلطی او حکومت څخه خلاص او آزاد کړی .

آمین ثم آمین یارب العلمین ویا ارحم الراحمین

محترمو لوستونکو !

هغه کتابونه چه ما د هجرت په تریخ او ناساعد ژوند او د افغانستان دروان جهاد په دوران کی لیکلی چاپ کړی او جامعی ته می تقدیم کړیدی په لاندے ډول دی :

١- جهاد او مجاهد لمړے ټوك (١٥٠٠) ټوکه

٢ جهاد او مجاهد دویم ټوك (١٥٠٠) ټوکه

٣ د روسانو مکر او د افغانی غیورو مسلمانو مجاهده او غیر - - - - - - - - (١٥٠٠) ټوکه

۴ - اتحاد او جهاد «(۱۰۰۰)» ټوکه

۵ - د ظلم وقتل تاریخچه او دهغې جریان او سنا (۱۰۰۰) ټوکه

۶ - د ۱۳۵۷ کال دثور د میاشتې «۷» نیټه یخنۍ څه؟

(۱۰۰۰) ټوکه

۷ - یو بل کتاب چه څه برخه موادئ برابر او څه برخه ئې دځینو معاذیرو له امله ینمګړې ده دلاندې عنوان لاندې لیکل شوې جهاد د اسلام په رڼاکي، لا ستر او سه پورې نه دې چاپ شوې .. له لوی خدای څخه د دغه پزموری کتاب او دداسې نورو دیني او اسلامي اجتماعي او سیاسي، اخلاقي او اقتصادي کتابونو په لیکلو، خپره ولو او نشر ولو کی له خپل مهربان خدای څخه مرسته او توفیق غوارم .

« والسلام مع الاکرام »

مولوی ولاجان «وثیق»

وزیروال - خوګیاني




۱۵ سنبله - ۱۳۶۱ هـ ش

لو ددے د پاره چه انسان خپل انسانیت کرامت او شرافت په لنظرکی ونیسی د تفکر ، تدبر او تعقل څخه کار واخلی ۔

رَبُّ الْعٰلَمِیْنَ اَحْکَمُ الْحَاکِمِیْنَ خدا ے د قرآن عظیم الشان په ژبه حضرت رسول الثقلین امامُ الْقِبْلَتَیْن محمد مصطفی صلی اللّٰه علیه واله ته د راتده او بنا یعنی لیدونکی او نه لیدونکی په هکله داسی اطلاع اوخبر ورکوی :۔

هَلْ یَسْتَوِی الْاَعْمٰی وَالْبَصِیْرُ ط اَفَلَا تَتَفَکَّرُوْنَ ه

معنیٰ داچه :

ایا برابر کیدا ے شی روند او لیدونکی ۔

نه ! نه سره برابریږی ۔ آیالو فکر ( غور ) نه کوی تا سے چه حق له باطله بیل کړی او ایمان راوړی :

محترمو لوستونکو انسانی قولونه دوه قسمه دی:

۱۔ علمی ۔

۲ ۔ عملی

علمی : د علمی قولتونو په اعتبار د نبی او غیر نبی په منځ کښی د رانده اولیدونکی په شان فرق شته

د انبیاء علیهم السلام د زړه سترګی هر وخت د الٰهی مرضیاتو او د ربانی تجلیاتو د لیدلو له پاره پرانستلی وی چه د هغوله بلا واسطی مشاهدے څخه نور انسانان بی برخی دی :

۲ - عملی - د عملی قوتونو حال داسے وی چه رسول[۴] پخپل قول او فعل او هر یوه حرکت او سکون کی د الله ج د رضاء د ربانی حکم تابع او منقاد وی ، د سماوی وحی او د الٰهی احکامو په خلاف نه دده قدم پورته کیداے او نه ئی ژبه خوځیداے شی . نو باید عرض کړم چه د اسلام دلوی رهبر حضرت پیغمبر (ص) مقدس وجود اخلاق او اعمال د ژوندانه په ګردو واقعاتو کښے د ربانی تعلیماتو او د الٰهی مرضیاتو روڼ تصویر او ډیر ښه مثل دی چه د هغه له لیدلو څخه غورکوونکو او فکرکوونکو ته دده په صداقت او خدائے (ج) له طرفه دده په مامور ګرځیدلو لږ څه شک او شبهه نشی پاتی کیداے نو ځکه چه حضرت پیغمبر (ص) واقعی انسانانو د عقل فکر ، ایمان او اسلام خاوندانو ته بشیر ، بی علمه بی عقله او فاسقو یاغی باغی انسانانو ته د نذیر په صفت راغلی - همدغه مختار د کونینو سردار رسول

حضرت محمد (ص)
خدای (ج)، رسول (ص)، قرآن عظیم الشان او په نورو
مومن به اشیاؤ باندی منکر او کافر انسانان له
عذابونو او تعذیبونو څخه بیره وی . مومنانو ته دکاملی
سلامتی او رحمت او مغفرت بشارت ( زیری ) ورکوی
چه زړونه ئی مطمئن او ډاډه شی د ظالمانو او جابرانو
د ظلم او جبر د دولتمندو متکبرانو له طعن او تشنیع او
له تحقیر او بد سلوک څخه خفه او خوابدی نشی -
احکم الحاکمین او ارحم الراحمین خدای (ج)، ځکه ټول
احکام او ایتونه په تکرار او تفصیل سره حضرت محمد (ص)
ته نازل کړي او بیان کړي دي چه د مؤمنانو او صالحو انسا-
نانو په مقابل د مجرمانو او کجروانو طریقه واضحه او
روښانه شی او بیائی په عامه توګه دا خبرداری هم
ټول منزل کتاب قرآن عظیم الشان کی انسانانو ته ورکړی
چه :

مَنْ عَمِلَ مِنْكُمْ سُوْءًا بِجَهَالَةٍ ثُمَّ تَابَ مِنْ
بَعْدِهِ وَاَصْلَحَ فَاَنَّهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝

ترجمه :
هرڅوك چه وکړی له تاسی څخه بدی په ناپوهی

سره ـ حقیقتاً یا حکماً ـ بیا توبه وکړي پس له کولو د هغې بدی او اصلاح کړي (سنه کړي) عمل خپل نو بیشکه الله سبحانه ببښونکی د خطیاتو ، ډیر مهربان دی د اجر او ثواب په انعام سره .

ډیرو قدرمنو لوستونکو !

دا چه فرمایلي دي هرڅوك چه په ناپوهۍ له تاسې څخه بدی وکړي ، سبا ئي چه له دې څخه دا غرض وی چه هر مؤمن چه بدی او معصیت کوی که په ناپوهۍ وی یا په عمد او قصد سره وی هغه في الحقیقت د هغې بدي او ګناه له بد عاقبته تر یوه حده پورې ناواقفه او بی‌خبره وی چه ئي کوی ، که د دې ګناه د تباه کوونکو نتائجو څخه په پوره ډول خبر او مستحضر وائي نو ولې به ئي د هغې په کولو جرائت کاوه .

دد غه لوستل شوی آیت کریمه شا نزول به هم د محترمو لوستونکو حضور ته عرض کړم هغه دا چه د مؤمنانو یو ټولی رسول (ص) ته راغې او وی ویل چه له موږ نه ډیر لوی ګناهونه او تقصیرات شوی دي نو آیا زموږ د بخښنې او غفران څه امکان شته ؟

رسول (ص) دوی ته هیڅ التفات ونه فرمایه
او دغه مؤمنان نا امیده لاړل نو دغه ذکر شوی
آیت کریمه نازل شو او دا سی توبه کوونکی ته په
دنیاکی د سلامتیا زیری او په عقباکی د رحمت بشارات
ورکړشو او د رب العزت له خوا د مغفرت لزوم تفضلاً
ور مرحمت شو.
دد غه مکرم آیت د معنی او تفسیر د ښه توضیح
کولو په منظور د محترمو لوستونکو حضورته شعراً
یو عرض وړاندی کیږی:

فرښتی که په هونړ ښکلی ګناهونه
پاك الله دی په ځان ښکلی رحمتونه

که ګناه له هونړه ډیره شی چاپیره
پاك الله لری غفور رحیم لومونه

او رحمت ئی په غضب باندی غالب دی
څه شو څه شو که ئی دواړه دی وصفونه

# د ۱۳۵۷ کال
# د غوائی د میاشتې
# ۷ نیته
# یعنې څه؟

مؤلف

مولوی ولاجان "وثیق"
وزیروال - خوګیاڼی

سنبله ۱۳۶۱

د ۱۳۵۷ کال

# دغوائی د میاشتی «۷» نیټه

یعنې څه ؟

مؤلف :

مولوی ولی جان « وثیق »

وزیروال - خوګیانی

حمل - ۱۳۶۰ هـ ش

بسم الله الرحمن الرحيم

ولقد ذرأنا لجهنم كثيرا من الجن
والانس لهم قلوب لا يفقهون بها ولهم
اعين لا يبصرون بها ولهم اذان
لا يسمعون بها ط اولئك كالانعام
بل هم اضل ط اولئك هم الغفلون ط

( القرآن )